سوال :ایا د نشي په حالت کي طلاق واقع کیږي که نه ؛مثلا یو کس په شرابو یایو بل داسي حرام شي نشه شي او پدي حالت کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي ایا دده طلاق واقع شو؟ پدي هکله مدلل ځواب راکړئ ، الله به اجرعظیم درکړي.

ځواب :شراب او نور حرام نشه يي مواد استعمالول سخت حرام کار دی، البته که کوم کس په نشه کي خپلي میرمن ته طلاق ورکړي نو ایا دده طلاق واقع شو کنه؟ نو پـــدي هکله د علماء کراموترمنځ اختلاف دی؛ راجحه مسئله داده چي د نشي په حالت کي طلاق نه واقع کیږي برابره خبره ده که دا کس په داسي شي نشته شوی وي چي هغه مباح وي او که په په حرام شي نشه شوی وي؛ لکه چرس، شراب او داسي نور وي.

داد امیرالمومنین عثمان بن عفان، ابن عباس، عمربن عبدالعزیز، قاسم، طاووس، ربیعه یحي الانصاري، لیث، اسحاق، اهل ظواهرو، په شوافعو کي د مزني، په احنافو کي د امام زفر، طحاوي، ابوالحسن کرخي او داسي نورو ګڼو علماوو قول دی.

شیخ الاسلام ابن تیمیه، او امام ابن القیم هم دیته ترجیح ورکړي.

د شیخ ابن باز، شیخ عثیمین ، قرضاوي، د جدید فقهي مسائل د مصنف مولانا خالدسیف الله ( حنفي ) او نورو علماوو مذهب هم دی.

مونږ ته هم دا قول د دلائلو په وجه صحیح ښکاریږي، لکه په دي خبره دلائل په لاندي ډول دي:

امام بخاري رحمه الله په خپل صحیح کي داسي روایت نقلوي:

وَقَالَ عُثْمَانُ : لَيْسَ لِمَجْنُونٍ وَلَا لِسَكْرَانَ طَلَاقٌ . وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : طَلَاقُ السَّكْرَانِ وَالْمُسْتَكْرَهِ لَيْسَ بِجَائِزٍ . ( بخاري سره د فتح الباري ج9ص388.).

د لیوني او نشه کس طلاق نشته.

ابن عباس رضي الله وايي د نشه شوي کس طلاق نه واقع کيږي همدارنګه د هغه کس طلاق هم نه واقع کيږي په چا چي زور وکړل شو.

ابن المنذر رحمه الله خو په دي باندي د صحابه کراموا اتفاق ليکلی : هذا ثابت عن عثمان ، ولا نعلم أحدا من الصحابة خلافه .

د علي رضي الله عنه نه نقل دي (( کُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ إِلّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ )). هر طلاق صحيح کيږي مګر د معتوه سړي طلاق نه صحيح کيږي.

[ رواه البخاري في صحيحه و البيهقي في سننه الکبری ج7/ص359 ح14888و ابن ابي شيبه، سعيدبن منصور وغيرهم].

معتوه هر ناقص العقل ته وايي په دي کي ماشوم، ليونی او نشه شوی کس ټول دا خليږي. حافظ ابن حجر رحمه الله د معتوه متعلق ليکي: والجمهور على عدم اعتبار ما يصدر منه. جمهور علماء د معتوه نه صادر شوو خبرو ( لکه اخستل، خرڅول، طلاق ) ته هيڅ اعتبار نه ورکوي.

د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله نه نقل دي چي هغه هم د نشه شوي کس طلاق نافذ نه ګڼل:

امام بيهقي په خپل سنن کي داسي روايت نقلوي:

أُتِىَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بِرَجُلٍ سَكْرَانَ فَقَالَ : إِنِّى طَلَّقْتُ امْرَأَتِى وَأَنَا سَكْرَانُ فَكَانَ رَأْىُ عُمَرَ مَعَنَا أَنْ يَجْلِدَهُ وَأَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَهُمَا فَحَدَّثَهُ أَبَانُ بْنُ عُثْمَانَ أَنَّ عُثْمَانَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ : لَيْسَ لِلْمَجْنُونِ وَلاَ لِلسَّكْرَانِ طَلاَقٌ فَقَالَ عُمَرُ : كَيْفَ تَأْمُرُونِى وَهَذَا يُحَدِّثُنِى عَنْ عُثْمَانَ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ فَجَلَدَهُ وَرَدَّ إِلَيْهِ امْرَأَتَهُ.

يعني عمربن عمربن عبدالعزيز رحمه الله ته داسي کس را وستل شو چي هغه خپلي ښځي ته د نشي په حالت کي طلاق ورکړی وو ؛ نو هغه وويل ما د نشي په حالت کي طلاق ورکړی!!.

نو د عمربن عبدالعزيز رحمه الله او زموږ ( يعني د هغه د ملګرو ) نظر داوه چي داکس دي په دُورو ووهل شي او د ده ځخه دي ښځه بيله کړی شي.

پدي کي ابان بن عثمان رحمه الله ورته وويل : اميرالمؤمنين عثمان بن عفان رضي الله ( خو ) ويلي: د ليوني او نشه يي کس طلاق نه واقع کيږي، عمربن عبدالعزيز رحمه الله چي کله دا واوريدل نو خپلو ملګرو ته يي وويل تاسي ماته ځرنګه ( ددي کس نه د ښځي بيليدو ) خبره کوئ حال داچي ابان بن عثمان ماته د عثمان رضي الله عنه داسي روايت نقلوي.

بياعمربن عبدالعزيز دا کس په دُورو ووهل او خپله ښځه يي ورته واپس ورکړه.

يعني دده طلاق يي نافذ نکړل. ( دا روايت امام بيهقي او ګڼو محدثينو راوړی).

(σ) د نشي په حالت کي د طلاق نه واقع کيدل ددي ايت کريمه نه هم معلوميږي:

الله تعالی فرمايلي دي: ( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ ) النساء/4.

پدي ايت کي د نشه يي خبره الله غير معتبره ګڼلي، ځکه دی په خپله خبره نه پوهيږي.

د احاديثو ځخه هم معلوميږي چي دداسي کس قول ته هيڅ اعتبار نشته ، لکه په لاندي حديث کي راغلي يو سړي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په حضور کي د زنا اقرار وکړو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ده خو شراب ندي ځکلي؟ نو يو سړی ورپاځيده دده خوله يي بوي کړه .

ددي حديث نه معلوميږي که ده شراب ځکلي واي نو دده خبري ته به اعتبار نوو، حديث داسي دی: أنه( صلي الله عليه وسلم ) أتاه رجل يقر بالزنا ، فقال : (أشرب خمرا ؟) فقام رجل وشم فمه فلم يجد منه ريح خمر . رواه مسلم (1695) .

بله وجه داده چي د نشي شوي كس د طلاق وركولو وخت كي اراده نوي نو داسي شو لكه مكره يعني هغه كس چي په چاباندي په زوره طلاق واچول شي.
بله وجه داده چي دى د ليوني او ويده په شان دى.
بله وجه داده چي انسان په عقل مكلف دى، دده خو د نشي په وخت كي عقل زائله وي.
بله وجه داده چي د نشي په حالت كي نيت نوي، او حديث كي راغلي چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي : "إنما الأعمال بالنيات" د هر عمل دار مدار تر نيت پوري دى.
وگوره: "مجلة البحوث الإسلامية" (252/32) ، "الموسوعة الفقهية" (18/29)، "الإنصاف" (433/8) ،إغاثة اللهفان في حكم طلاق الغضبان – لابن القيم، ص 17).
شيخ ابن باز رحمة الله عليه په هغه چا رد كوي ځوک چي زجراً او عقوبة دده طلاق واقع ګڼي، چي هغوي هسي بي ځايه سزا ور كوي دده سزا خو طلاق واقع كرځول ندي بلكه دداسي كس سزا خو (٨٠) دوري وهل دي، د نشي په وجه د طلاق واقع ګرځولو سزا د(( شرعي حد )) بدلو مترادف ګرځيږي. (فتاوى ابن تيمية، جـ 2 ص 124، ط. مطبعة كردستان . القاهرة).
شيخ الإسلام ابن تيميه رحمه الله په خپله فتاوى همدارنګه امام ابن القيم په خپلوكتابونو لكه زاد المعاد، اغاثة اللهفان، قاضي شوكاني په نيل الأوطار د جانبينو له تفصيلي د لائلو ذكر كولو نه ورسته ديته ترجيح وركړي چي د نشي په حالت كي طلاق نه واقع كيږي.
دكتور يوسف القرضاوي – رئيس المجلس الأوروبي للإفتاء والبحوث – هم پدي باندي مستقله فتوه ليكلي چي د نشي په حالت كي طلاق نه واقع كيږي .
دكتور عبدالله الفقيه په خپله فتاوي كي ليكي: وهذا القول هو الراجح.

**الجواب صحيح: ابومحمدامين الله البشاوري( حفظه الله ورعاه).**

**وكتبه ابوخالد لائق احمد غزنوي**